# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰۱ ګڼه / شنبه ۰۸ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۱۸مه ۱٤۰۳ هـ.ش /۰۸ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





## ایران او پاکستان دې د نړیوالو کډوالو اصول په پام کې ونیسي

د کډوالـو او راسـتنېدونکو چارو وزارت سرپرسـت مولوي عبدالکبیـر په کابـل کې د ایران له سـفیر علي‌رضـا بېګدلي او د پاکسـتان له سـفیر عبیدالرحمن نظاماني سـره جلا غونډې کړي دي.

یـاد وزارت وایي، چې ښـاغلي عبدالکبیـر پـه دواړو هېوادونـو کې له افغان کډوالو سـره د ښـه چلن غوښـتنه کـړې او ویلي یې دي، چې ایران او پاکستان دې د نړیوالو کډوالـو اصول په پام کې ونیسي.

پـه دې غونډه کې د ایران سـفیر ویلـي، چـې تهـران بـه افغان قانونـي کډوالو ته قانوني اسـناد ورکړي او د غیر قانوني... ۳مخ

## د ارشاد، حج او اوقافو وزارت:
# سږ کال به ۳۰ زره حاجیان حج اداینې ته لاړ شي



**شریعت:** د ارشاد حج او اوقافو وزارت مسـؤلینو ویلي،چـې سـږ کال بـه ۳۰ زره حاجیان د حـج د اداء کولو لپاره سـعودي عربستان ته ولاړ شي، چې په یو تن حاجي به ۲ لکه ۸۲ زره ۹۰ افغانۍ لګښت راشي.

پـه دې اړه د رسـنیو پـه مرکـز کـې جوړې شـوي غونـډې ته د ارشـاد، حـج او اوقافو وزیر شـیخ الحدیث نور محمد ثاقب وویل: چې د روان ۱۴۴۶ هـ ق چـې د راتلوونکي ۱۴۰۴ هـ ش کال سـره سمون خوري د راکړل شـوي سـهمیې مطابق حرمینو شـریفینو ته د حاجیانو د لېږ را لېږد پـه موخه په داخل او خارج کې پر وخت ... ۳مخ

## د افغانستان او ایران د دوه اړخیزو اړیکو پر پراختیا ټینګار وشو



د افغانسـتان د بهرنیـو چـارو وزارت وایي، چې په مشـهد کې د اسلامي امارت جنرال کونسل فیضان‌اللـه ناصـري د ایـران د خراسـان رضوي لـه والي ډاکتر غـلام حسـین مظفري سـره د پېژندنې غونډه کړې ده.

د یـاد وزارت مرسـتیال ویانـد حافـظ ضیاءاحمد تـکل ویلي، پـه دې غونډه کې دواړو لوریو د سیاسـي، اقتصادي، سوداګریزو او کلتـوري اړیکـو د پراختیا په اړتیا ټینګار کړی دی.

یاده دې وي، پـه دې غونډه کې د ایـران د بهرنیـو چارو وزارت اسـتازو، د خراسـان د سیاسي او امنیتـي چـارو مرسـتیالانو او د افغانسـتان د کونسـلي چـارو مسـئولینو هـم ګـډون کړی وو.

## پکتیکا کې د شاوخوا ۶ میلیونو افغانیو په ارزښت پروژې پیل شوې



د پکتیـکا پـه مرکز ښـرنې کې د دې ښـار لپاره د نـوي منظور شـوي پلان له مخې د شـاوخوا ۶ میلیونـه ډالـرو په ارزښـت د بېلابېلو بنسټیزو پروژو چارې پیل شوې.

پـه دې پروژو کـې د لسـګونو مارکیټونو سـربېره د دوو سړکونو او جوماتونوجوړول شـامل دي.

ورته مهال د ښرنې ... ۳مخ

## تورخم کې د ټپیانو پوښتنه او ورسره نغدي مرسته شوې




د ننګرهـار د رسـنیو دفتر ویلي، چې د دې ولایت مرسـتیال والي مولوي عزیزالله مصطفی تورخم کې له پاکسـتاني پوځیانو سـره جګړه کې د ټپي شـویو کسـانو د روغتیایـي وضعیـت پوښـتنه او ورسـره یـې نغـدي مرسـته کړې ده.

دې دفتـر ویلي چې ورمه ورځ د افغان او پاکستانیو... ۳مخ

## سرمقاله



## کنډواله شوې غزې کې بیاځلي ساه

د فلسـطین پر مظلـوم ولس او غزه کې د تېر یو، یو نیـم کال ظلمونه او قسـاوت د یهودانـو د تاریخ یوه تـوره پاڼه ده چې راتلونکي نسـلونه به یې په لوسـتو شـرمېږي. په دې کچه انسـاني فاجعه چې په غزه کې د صهیونېسـت رژیم عسکرو رامنځته کړه، د نړۍ په هېڅ بشري جګړه کې نه وه پېښـه شـوې. د صهیونېست رژیم عسـکرو به د وسلو او زغروالو ټانکونو سـربېره لـوډرې او بلدوزرونـه هم له ځان سـره بیول؛ تر څو روغ ځایونـه پرې ونړوي او حتی شـین بوټي پرېنـږدي. د نړۍ په هېڅ جګړه کې انسـانانو په خپلو غړو شـهرتونه نه وو لیکلي، چې ګونډې تر شـهادت وروسـته یې د کورنۍ غړي وپېژني. حتی صهیونېستانو هدیرو او زیارتونو کې بې سـاه جسـدونه هم پرېنښـودل او بمبارونه یې پرې وکړل. صهیونېسـت رژیم د خپل وحشت ننداره وراندې کړه او ټوله نړۍ پرې یا چوپ وه او یا یې حتی د دوی ماشـینونو ته تېل وراچول.

له بېسـاري وحشتونو او بمباریو وروسـته د غزې د بیاودانو هوډ شوی. مصـر د عربـي هېوادونو په همغږۍ داسـې طرحه چمتـو کړې چې له مخـې به یې په څـو پړاوونو کې غـزه بېرته ودانـه او د ژوند ژواک ور وګرځي.

د مصر ولسمشـر عبدالفتاح السیسـي ویلي، چې د غـزې د بیارغونې لپاره د دې هېواد طرحه د عربو مشـرانو له لوري تصویب شوې ده.

دغه طرحه درې پړاوونه لري لومړی پړاو یې شـپږ میاشـتې دوام کوي، چـې پکې د خـاورو او خځلو پاکـول، د موقتي کورونـو جوړول او د نیمه‌ویجاړو کورونو بیارغونه شـامله دي.

دویم پـړاو یې دوه کاله په بر کې نیسـي چې پکـې د وېجاړېو پاکول، د اوبو او برېښـنا شبکو جوړول او د نورو اسـتوګنیزو واحدونو جوړول شامل دي.

درېیمه مرحله یې دوه‌نیم کاله دوام کوي، پکې د غزې د ټولو اوسېدونکو لپـاره د کورونو جوړول، د صنعتي زون ... ۳مخ

## غزني کې ۶۰ کسیزه ځانګړې قطعه جوړه شوه



د غزني امنیـه قومنداني د رهبري لـه لـوري د غزني ښـار اړوند سیمو او ښـار ته نیږدې ولسوالیو د لا ښـه نظم لپاره یوه ۶۰ کسیزه ځانګړې قطعه جوړه شوه.

تر څو په ښـار کې هغه کسان تر څار لاندې ونیسـي چې په بازار کـې د یـو څـه د پلور پـه بهانه ګرځي خـو اصلي موخـه یې د ښـار له ګټې کونې څخـه په ګټه اخیسـتنې د خلکـو مالونـه پـه ځانګړې توګه له ښـځو تلیفونونه غلا کول دي.

د غزني امنیـه قومنداني د نظامي چارو مرسـتیال محتـرم مولوي نصرت الله خـادم وویل چې دا قطعه بـه د نورو کړنـو تر څنګ شـکمن جنایتکاران څاري او د خپلو کړنو په بنـا به یې عدلي او قضایي ارګانونو ته ورپېژني.

## فـراه کـې شـنې خـونـې جـوړې شـوې



د فـراه د کرنـې، اوبـو لګولو او مالداري ریاست مسوولینو ویلي چې دې ولایت کـې د یو میلیارد افغانیو په ارزښـت شـنې خونې جوړې شوي دي.

د فـراه د کرنـې، اوبـو لګولو او مالـداری ریاسـت یوه مسـئول ویلـي چې له هرې شـنې خونې یو موسـم کـې شـاوخوا ۱۴ ټنه محصولات ترلاسه کېږي.

دې ولایـت کـې د خصوصـي سـکټور له لارې پر شـنو خونو ۹۹۳ میلیونـه ۶۱۹ زره ۴۶۰ افغانۍ پانګونه شـوې او د کرنې ریاسـت او همکارو مؤسسـو له لوري یو شمېر شنو خونو لرونکو ته د اړینو وسایلو او توکو مرستې ورکړل شوې دي. ۳مخ

## نجات یک زن از زندان خانگی در زابل



وزارت امـر بالمعـروف و نهـی عن‌المنکر می‌گوید، محتسـبین ایـن وزارت در ولایـت زابـل موفق شـده‌اند که یک زن را پس از شـش سـال از زندان خانگی نجات دادند.

به گفتـه وزارت امـر بالمعروف و نهـی عن‌المنکـر، ایـن زن از سوی شـوهر و پدر شوهرش در مربوطات ولسوالی... ص۳

۲ مخ

### اعتدال – د اسلامي ټولنې د سوکالۍ او پرمختګ راز!

۲ مخ

### روژه د برکت او رحمتونو میاشت

۲ مخ

### روژه او توبه

ای روژه نیوونکو! روژه د توبې کولو لپاره ډېره ښه موقع ده راځئ د ټولو ګناهونو څخه که کوچني وي که لوی توبه وباسو...

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

ضیاء الحق حسان / پنځمه برخه

الله عزوجل ـ د رمضان میاشتې ته زیاتې ځانګړنې او فضیلتونه ورکړي، دا د قرآن د نزول، سخاوت او احسان میاشت ده، د توبې، مغفرت او د دوزخ له اوره د خلاصون میاشت ده. په دې میاشت کې د جنت دروازې پرانیستل کېږي، د دوزخ دروازې تړل کېږي او شیطانان تړل کېږي. په دې میاشت کې یوه شپه شته چې له زرو میاشتو غوره ده.

د ابو هریره ـ رضي الله عنه ـ نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: کله چې د رمضان لومړۍ شپه شي، شیطانان او سرکشه پېریان تړل کېږي، د دوزخ دروازې تړل کېږي، هېڅ یوه نه خلاصېږي، د جنت دروازې پرانیستل کېږي، هېڅ یوه نه تړل کېږي، یو اواز کوونکی غږ کوي: ای د خیر لټونکیه! راشه، او ای د شر غوښتونکیه! ځان وساته او الله ته هره شپه له دوزخ نه ازادېدونکي بنده ګان وي. ترمذي

ابن القیم رحمه الله وايي:

«د رمضان په میاشت کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم طریقه دا وه چې د عبادتونو زیاتوالی یې کاوه. جبرائیل علیه السلام به په رمضان کې ورسره قرآن تکراروه او کله به چې جبرائیل ورسره ملاقات کاوه، نو له لېږل شوي باد څخه به هم زیات سخي و. د ټولو خلکو نه زیات سخي و او له ټولو زیات به یې سخاوت په رمضان کې کاوه. په دې میاشت کې به یې صدقه، احسان، د قرآن تلاوت، لمونځ، ذکر او اعتکاف زیات کاوه. رمضان ته به یې ځانګړې عبادت کاوه، هغه عبادت چې نورو میاشتو ته به یې نه کاوه.»

سلف صالحین او رمضان:

سلف صالحین ـ رضوان الله علیهم ـ به د رمضان میاشت له ډېرې مینې، شوق او انتظار سره استقبال کوله او دا میاشت به یې د نیکیو، طاعتونو او خیراتو لپاره مسابقه بلله. د دې مبارکې میاشتې سره به یې ځانګړې اړیکې درلودې.

د قرآن کریم سره اړیکه:

رمضان د قرآن میاشت ده، الله تعالی فرمايي: سلف صالحین به د رمضان په میاشت کې د قرآن تلاوت ډېر کاوه. (البقره: ۱۸۵).

عثمان بن عفان ـ رضي الله عنه ـ به هره ورځ یو ختم کاوه.

اسود بن یزید به د رمضان په هرو دوو شپو کې یو ختم کاوه او د رمضان نه بغیر به یې په هرو شپږو شپو کې یو ختم کاوه.

سعید بن جبیر به په هرو دوو شپو کې یو ختم کاوه.

محمد بن اسماعیل بخاري به د ورځې یو ختم کاوه.

امام شافعي به په رمضان کې ۶۰ ختمونه کول.

قتاده به همیشه هره اوونۍ یو ختم کاوه، خو په رمضان کې به یې په هرو دریو شپو کې یو ختم کاوه او د رمضان په آخري لسو شپو کې به یې هره شپه یو ختم کاوه.

زهري به چې رمضان ته داخل شو، نو د حدیث له لوستلو او د علم له مجلسونو به لرې کېده او یوازې به یې د قرآن تلاوت ته ځان وقف کاوه.

ابن رجب حنبلي وايي: «د دې نهي چې قرآن دې د درې ورځو نه کم موده کې نه ختمېږي، مطلب دا دی چې دا عادت نه جوړېږي، خو په فضیلت لرونکو وختونو کې لکه رمضان، یا فضیلت لرونکو ځایونو کې لکه مکه، د قرآن زیات تلاوت مستحب دی. دا د امام احمد، اسحاق او نورو علماوو نظر دی.»

نور بیا...

# روژه او توبه

لومړۍ برخه / مولوي نورالحق مظهري

ای روژه تیانو! روژه د توبې کولو لپاره ډېره ښه موقع ده راځئ د ټولو ګناهونو څخه که کوچني وي که لوی توبه وباسو او الله پاک ته راجع شو!

الله پاک په خپل احسان باندې د توبې دروازه خلاصه پرې ایښې ده، ځکه الله پاک د توبې کولو امر کړی او د قبلولو وعده یې ورکړې ده که څه هم ګناهونه غټ او ډېر وي. الله پاک فرمايي: ژباړه: خپل رب ته رجوع وکړئ او ورته تسلیم شئ مخکې تر دې چې تاسو ته عذاب راشي وروسته بیا ستاسو کومک نه کېږي[الزمر: ۵۴].

په دې آیت کې الله پاک خپل بنده ګان په دې باندې امر کړي چې الله پاک ته راجع شي، د رجوع معنی همدغه ده چې توبه دې وباسي.

البته د دریو حالتونو وروسته د انسان توبه نه قبلېږي: هغه وخت چې لمر د مغرب لخوا را وخېژي، هغه وخت چې د انسان ځانکندن وي او د غرغرې حالت یې وي او هغه وخت چې د عذاب نزول شروع وي.

چې په همدغه آیت کې یوه شي ته اشاره شوې ده ځکه الله پاک فرمايي مخکې له دې چې تاسو ته عذاب راشي الله پاک ته راجع شئ یعنې د عذاب راتللو وروسته بیا راجع کېدل کومه ګټه نه لري.

همدا راز الله پاک د توبې د قبلولو په اړه فرمايي:

ژباړه: الله هغه ذات دی چې د خپلو بندګانو څخه توبه قبلوي او ګناهونه یې ورته ښښي او په هغه څه باندې پوهېږي چې بندګان یې کوي. [الشوری: ۲۵]

نو چې الله پاک زموږ توبه راڅخه قبلوي موږ باید چې څومره ژر وي د ټولو لویو او کوچنیو ګناهونو څخه توبه وباسو او الله پاک ته راجع شو.

الله پاک پر خپلو بندګانو ډېر مهربانه دی، د دې ترڅنګ چې د نېکۍ په کولو یې ډېر خوشحالېږي بلکې د روژې په میاشت کې یې څو برابره ورته حسابي او په عامه توګه یې استغفار او توبې ته تشویقوي ترڅو د ګناه کولو وروسته توبه وباسي او د الله د دربار څخه نا امیده نه شي. الله جل جلاله فرمايي: ژباړه: هرڅوک چې بد کار وکړي او یا پرځان باندې ظلم وکړي وروسته بیا د الله پاک څخه د ښښې غوښتنه وکړي نو الله پاک به ښښونکی او مهربان و مومي. [النساء: ۱۱۰]




همدا راز د نصاراوو په اړه فرمايي: ژباړه: یقیناً چې کافران شوي دي هغه خلک چې دوی وايي: الله د درو دریم دی په داسې حال کې چې بېله یوه الله بل هېڅ حق معبود نشته، که چېرې دوی د خپلې دغه وینا څخه لاس وانه خلي نو ارومرو به هغه خلکو ته د دوی سخت عذاب ورسېږي چې کافران شوي دي. [المائدة: ۷۳]

بیا یې وروسته الله پاک توبې کولو ته تشویقوي او فرمايي: [المائدة: ۷۴]

ژباړه: ولې دوی الله پاک ته توبه نه کوي او ولې د الله پاک څخه ښښه نه غواړي په داسې حال کې چې الله ښښونکی او مهربان دی.

او د هغه خلکو په اړه چې مسلمانان یې د اور کندو ته ور اچول الله پاک فرمايي: ژباړه: یقیناً هغه خلک چې مسلمانانو نارینه او مسلمانو ښځو ته یې عذاب ورکړ وروسته یې توبه هم نه ده کړې د دوی لپاره به د جهنم او سوځوونکی عذاب وي. [البروج: ۱۰]

حسن بصري رحمه الله د دې آیت په تفسیر کې فرمايي: تاسو د الله پاک احسان او مهربانۍ ته وګورئ چې دغه خلکو د الله پاک اولیاء او دوستان وژلي، خو الله پاک یې بیا هم توبې او ښښې ته دعوتوي.

د توبې ارزښت دومره ډېر دی چې الله پاک خپل بندګان د الله پاک د رحمت د نا امیدۍ څخه منع کړي دي او فرمايي: ژباړه: ووایه ای زما هغه بندګانو چې پر ځان مو اسراف کړی، د الله د رحمت څخه مه ناهیلي کېږئ یقیناً چې الله ټول ګناهونه ښښي او یقیناً چې الله ښښونکی او مهربان دی. [الزمر: ۵۳]

عبدالله ابن عباس رضي الله عنه د دې آیت په تفسیر کې فرمايي: څوک چې د دغه آیت وروسته خلک د توبې څخه نا هیلي کړي نو هغه انسان د الله د کتاب څخه انکار وکړ.

د توبې فضیلتونه:

۱- د توبې فضیلتونه او رازونه بېخي ډېر دي: توبه د کامیابۍ سبب دی، توبه د نېکمرغۍ لاره ده، په توبې باندې د انسان ګناهونه له منځه ځي او چې څوک سمه توبه وباسي الله پاک یې بدۍ په نېکیو باندې بدلوي.

۲- الله تعالي د خپل بنده په توبې باندې ډېر خوشحالېږي:

د احادیثو په کتابونو کې هغه حدیث راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه کې د بنده په توبې باندې د الله پاک د خوشحالۍ یادونه کوي؛ په حدیث کې راځي: الله پاک د خپل بنده په توبې باندې تر هغه چا ډېر خوشحاله کېږي چې یو ډېر خطرناک ځای ته ولاړ شي؛ ډوډۍ، اوبه او نور سامانونه یې پر سورلۍ باندې تړلي وي نو خپل سر کېږدي تر څو یوکړې ویده شي کله چې د خوبه را ویښ شي که ګوري سورلۍ یې نشته، ګرمي هم ډېره سخته وي او دی هم ډېر تږی شوی وي نو د خپلې دابې پسې وګرځي خو د پیدا کولو څخه یې عاجز شي تر څو چې ناهیلی شي نو له ځان سره فیصله وکړي چې بېرته خپل هماغه پخواني ځای ته ځم، هغه ځای ته چې ولاړ شي نو ویده شي کله چې د خوبه را ویښ شي که ګوري سورلۍ یې سر ته ولاړه ده، نو دا انسان ډېر خوشحاله شي آن تر دې چې د ډېرې خوشحالۍ له امله د دې پر ځای چې دی ووايي: ای الله ته مې خدای یې زه دې بنده یم داسې ووايي: ای الله ته مې بنده یې زه دې خدای یم.

نو دغه سړی چې څومره خوشحاله کېږي الله پاک د خپل بنده په توبې باندې تر دغه انسان ډېر خوشحالېږي.

۳- په توبې باندې الله پاک توبه کوونکي ته ډېر مراتب د عبودیت ورکوي چې بیا پر هغو باندې د ډېرو نعمتونو ورکول مرتب دي.

۴- په توبې باندې الله پاک توبه کوونکي ته محبت، د زړه نرمي، مهرباني، شکر ایستل، د الله پاک حمد ویل، د الله پاک څخه خوشحاله کېدل ورکوي.

۵- په توبې باندې انسان ته عاجزي او نفس شکستي پیدا کېږي او عاجزي الله پاک ته تر ډېرو ښکاره اعمالو بهتره ده؛ په دې خاطر دی چې الله پاک د عاجزۍ په وخت کې د انسان دعاء ژر قبلوي په خاصه توګه د سجدې په حالت کې دا ځکه چې هغه حالت د عاجزۍ او خضوع دی له همدې امله د مظلوم او مسکین دعاء ژر قبلوي ځکه چې هغوی عاجزي لري.

# اعتدال - د اسلامي ټولنې د سوکالۍ او پرمختګ راز!

مفتي محب الله حقاني

د انفرادي او ټولنیز ژوند په چارو کې تشدُّد، تنګ نظري او تفریط کول بې‌معنا او ناوړه کارونه دي، په ځانګړې توګه د ټولنې د هغو اشخاصو لپاره چې په ټولنیزو، دیني او ملي چارو کې د خپل فکر، رایې او نظر څرګندونه کوي. د اسلام مبارک دین خورا د وسعت، رحمت او آسانتیا دین دی، چې بې‌ځایه تشدد، سخت‌ګیري او تنګ‌نظري په کلکه غندي. داسې بېلګې هم شته چې ځینې کارونه، چې ظاهراً نامشروع ښکاري، خو دا چې عامه منفعت او مصلحت پکې پېیلی وي؛ نو له همدې أمله اسلام د خپل فطري وسعت او شفقت په تقاضا ورته مشروعیت ورکوي.

خو دا هم باید هېر نه کړو چې اسلام لکه څنګه چې تشدُّد او تفریط غندي، همداراز افراط، بې‌باکي، له حده زیاته نرم‌والی او تساهل هم ردوي. اسلام یو معتدل دین دی، چې اعتدال، میانه روي او منځلاریتوب یې یو بنسټیز اصل دی. نه افراط خوښوي او نه تفریط، نه تنګ‌نظري او نه هم سخت‌ګیري. بلکې، د اعتدال او میانه‌روۍ لاره غوره او ستایل شوې تګلاره ګڼي، د اسلامي تعلیماتو له اساسي اصولو څخه یو دا دی: «خیرُ الأمورِ أوسطُها» - یعني په چارو کې منځلاریتوب غوره تګلاره ده.



خو له بده مرغه، زموږ په ټولنه کې ځینې خلک د تشدد، تنګ‌نظرۍ او سخت‌ګیرۍ ښکار شوي او ځینې نور د تفریط، بې‌پروایۍ، له حده زیات نرموالي او تساهل ښکار شوي دي. د اعتدال، میانه‌روۍ او عادلانه نظر لرونکي اشخاص د ګوتو په شمېر دي. له همدې امله زموږ په ټولنیزو، په ځانګړې توګه سیاسي موضوعاتو کې، خپلمنځي اختلافات او کشمکشونه زیات دي، چې پایله یې تضاد، نفرتونه او د ټولنې د عامو خلکو په خپلو خواصو شخصیتونو بې‌باوري ګرځېدلې ده، دا ټول هغه ناوړه عواقب او بدې پایلې دي چې یوه ټولنه پر ملا ماتوي، له منځه یې وړي، برم عزت او قوت یې ختموي.

که موږ د اسلام له لارښوونو سره سم، د پېښو، قضیو او موضوعاتو په اړه لومړی غور او فکر وکړو، جرګې او مشورې وکړو او د حل لپاره یې په ګډه یوه معتدله او میانه روه لاره ومومو او بیا یې غوره کړو؛ نو اختلافات به نه وي، زموږ ترمنځ به د رأیو او نظرونو کشمکش نه‌وي، عام مسلمان ملت به د تردد، شک او شبهاتو له بند څخه خلاص وي، د اتحاد او اتفاق فضا به خوره وي، برم، عزت او قوت به مو پیاوړی وي او پر ټوله نړۍ به مو بیا راج چلېږي، إن شاء الله تعالی.

# ۳۶۰ خبرې

یوویشتمه برخه / امین وردګ

آیا د اولاد حقوق مو ورکړي؟

۱۰۱مه خبره- د مور او پلار په نسبت د اولاد حقوق مقدم دي، ځکه خو مو لومړی له ځانو وپوښتئ، چې ورکړي مو دي که نه؟

د اولاد پنځه اساسي حقونه

۱۰۲یمه خبره- د هر چا اولادونه پر خپل مور او پلار دغه پنځه اساسي حقوق لري (د نطفې او تخمې حلاله تغذیه، مبارک نوم، دیني تربیه، تر بلوغ پورې یې د ژوند ټول مصارف، د نکاح لپاره یې کوښښ)

شخصیت پېژندنه

۱۰۳یمه خبره- شخصیتونه له عاداتو او خواصو پېژندل کېږي، نه له الفاظو او جملاتو څخه، ځکه چې د الفاظو او جملاتو بدلون او سمون آسانه دی، خو عادات او خواص په سختۍ سمېږي.

د سختۍ ارزښت

۱۰۴مه خبره- ټول با ارزښته شیان په سختۍ ترلاسه کېږي، ځکه خو په کارونو کې سختیو ته مه خفه کېږئ، بلکې د آسانیو زېري یې وبولئ!

زما څوک خوښ دی او زه د چا خوښېږم؟

۱۰۵مه خبره- څوک چې زما خواص او زما عادات لري همغه مې خوښ دی او د هغه هم زه خوښېږم، نو اوس ته فکر وکړه! چې زه څرنګه شخص یم او زما ملګري څرنګه؟ اوس پوه شوې چې زموږ د قضاوتونو معیار زموږ طبیعت دی، نه حقیقت.

## ۱۰۲ تنه د توپچي له عملي او نظري زده کړو...

یاده دې وي، چې لـه دې وړانـدې هم لسګونه کسان د يادې لواء د توپچي امریت له خوا د «ډي‌سي» توپ او نورو درنو وسلو له عملي او نظري زده‌کړو فارغ شوي دي.

## امضای ۱۵ تفاهمنامه میان وزارت...

از سـوی دیگـر، آمـوزش خانواده‌های بی‌بضاعـت در تولیـد لبنیـات خانگی و پروسس سـبزیجات و فراهم‌سازی وسایل مـورد نیاز آن و آموزش‌هـای تخنیکی در بخـش جمع‌آوری و بسـته‌بندی پسـته از دیگر بخش‌های کار موسسـات گفتـه شده است.

قـرار اسـت ۱۷ هـزار و ۶۷۳ تـن در ولایت‌هـای کابـل، پکتیـکا، پکتیـا، خوسـت، بلخ، کندهـار، لوګـر، کندز، بغـلان، بدخشـان، بادغیـس، فاریاب، جوزجـان، ننگرهـار، تخـار و باميـان مستفید شوند.

ایـن در حالی اسـت کـه تلاش‌ها جهت ایجاد تسهیلات به سـکتور خصوصی در کشور همچنان ادامه دارد.

## سږ کال به ۳۰ زره حاجیان حج اداینې...

لازم او ګټـوراو پـر له پسـې اقدامات او فعالیتونـه تر سـره کړې چـې عبارت دي: سعودي عربسـتان افغانستان ته د ۳۰ زره حاجیان د حج سـهمیه اخیسـتل شوې او د لازیاتو سـهمونو د زیاتوالـي هڅې په جدي توګـه روانـې دي، چـې نوموړي سـهمیه د حـج پـه متقاضیانو په شـفاف او عادلانـه ډول په ټول هېواد کې وېشـل شوي ده.

ښـاغلي ثاقب زیاته کـړه، چې د ډېر غور او دقت وروسـته او د اضافـي مصارفو د مخنيوي په خاطر سـږ کال ټولې پروسـې لګښـت ۸ میلیـارده ۲۷۸میلیونـه ۷ لکه ۷۷زره ۳ سـوه ۲۰ افغانـۍ ټاکل شـوي دي.

هغـه وايي، چې سـعودي عربسـتان ته د حاجیانـو د لېـږ رالېږد په موخـه د آریانا افغان امارتي او کاير خصوصي شـرکتونو سره پر وخت هوکړې شوي دي.

ده وويـل، چې د حج سـهمیه کې د عامو حاجیانـو ترڅنـګ مجاهدیـن، امارتـي ادارات، شـهیدانو وارثانو، معلولینو او په ایران او پاکسـتان کې مهاجرینو لپاره هم سهميې مشخصي شـوې او همداشان سږ کال په ټول هېواد کې د یو لک په شـاوخوا نوې نوم لیکنه شـوې او بیا د قرغه کشـۍ لـه لارې بریالـي حاجیان معلوم شـوي دي.

هغه څرګنـده کړه، چې د حجاجو کرامو د لار ښوونې او هغوی ته د حج د مناسکو د تعلیم او زده کړې ورکولـو لپاره د معلمینو د ټاکلو په خاطر د هېـواد ټولو ولایتونو ته د وزارت له لوري باصلاحیت پلاوی لېږل شـوی و، د ولایتونو د علمـاء کرامو څخه يې ازموینه واخیسـتله چې ۶۵۲ کسان د ښـوونکو په توګه کامياب شوي او حرمينو شـریفینو ته به ولېږل شي.

نوموړي وويـل، چې ټولـو حاجيانو لپاره پـه مکه مکرمه کې حرم شـریف ته نږدې ودانۍ نیول شـوي او په مدینـه منوره کې پـه مرکزي او نږدې سـاحو کـې د ودانیو قراردادونـو سـربېره د حاجیانـو لکـه هسـوګن ځایونه، خوراک، ټرانسپورټ او په نـورو برخو کې اړین هوکـړه لیکونه په وخت ترسره شوي دي.

دی وايي، چې ټولـو حاجیانو ته د ۱۴۴۶ ه ق کال کې ورته د حج نوبت رسـېدلی، لومړی يې پیسـې تحویـل کړې د نوموړو حاجیانو څخه هیله کېږي، چې وروسـتی قسـط پیسـې تحویـل کـړي او د نـوې نوملیکنـې او امارتـي ادارو د سـهمیې محترمـو حاجیانـو تـه چې هېڅ پیسـې يـې نه دي تحویـل کړي، د حـج د اداء کولو ټولې پیسـې دې په یو ځـل تحویل کړي.

ټول حاجيان کولای شـي سـبا د یکشنبې ورځـې د ۹ رمضـان المبـارک د۱۴۴۶ ه ق چـې ۱۹ د حـوت ۱۴۰۳ ه ش کال سـره سـمون خوري په مرکز کې د حج، عمـرې او زیارتونو د عمومي ریاسـت او په ولایتونو کې د ارشـاد، حـج او اوقافو ریاسـتونو څخه تعرفې تر لاسه او نوموړې پیسـې په اړوند بانک کې تحویلي کړئ.

**سمیع الله مومند**

# افغـــان اعـــلانـــات

**اعلان داوطلبی ( ۶) باب دکاکین مربوط ناحیه اول شهر کابل!**

ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه (٦) باب دکاکین ذیل واقع ناحیه اول شهر کابل را به شـکل آفر سر بسته طور جداگانه بـرای مدت(۱) سـال به اعـلان داوطلبی می سپارد، .

۱- یـک بـاب دکان نمبـر(١٢٦) بـه مسـاحت(٥/٥١) مترمربـع واقع مندوی کابل ظاهر شـاهی مارکیـت مربوط ناحیه اول شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ( ٣٦٠٠٠ ) افغانی.

۲- یک باب دکان نمبر(۹۸) به مسـاحت (٤١٥/ ٥) مترمربع واقع مندوی کابل ظاهر شاهی مارکیت مربوط ناحیه اول شهر کابل بـه کرایه ابتدائـی ماهانه مبلـغ(٥١٦٥٠) افغانی.

۳- یک باب دکان نمبر(۱۷۱) به مسـاحت (٨/ ٢) مترمربع واقع منـدوی کابل ظاهر شاهی مارکیت مربوط ناحیه اول شهر کابل به کرایـه ابتدائی ماهانـه مبلغ(٣٥٢٣٠) افغانی.

۴- یـک بـاب دکان نمبـر(١٤٢) بـه مسـاحت(٦/٦٧) مترمربـع واقع مندوی کابل ظاهر شـاهی مارکیـت مربوط ناحیه اول شـهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ ( ١٠٥٥٠٠ ) افغانی.

۵- یـک بـاب دکان نمبـر(١٥٠) بـه مسـاحت(٦/٣٨) مترمربـع واقع مندوی کابل ظاهر شـاهی مارکیـت مربوط ناحیه اول شهر کابل به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ( ٣١١٥٠ ) افغانی.

۶- یـک بـاب دکان نمبـر(١٣) بـه مسـاحت(٥/٧) مترمربـع واقـع مندوی کابل ظاهر شـاهی مارکیـت مربوط ناحیه اول شـهر کابل بـه کرایه ابتدائـی ماهانه مبلغ(٥٥٧٦٣) افغانی.

کوردینات(جی.پـی.اس نمبـر): ٣٤/٥١٧١ -٦٩/١٧٧٥٦

اشـخاص حقیقـی و حکمی کـه خواهان به کرایـه گرفتن جایدادهای فوق را داشـته باشـند میتوانند درخواسـت های شـان را بعـد از تاریخ (١٨ / حـوت/ ١۴٠٣ الی ٢ / حمل/ ١۴٠۴) به ریاست عمومی املاک دولتی امارتی واقع منـزل چهارم تعمیر ١۴ منزله سـینمای پامیر تسلیم نموده شرطنامه را اخذ نمایند.

آدرس:سینما پامیر تعمیر١٤منزله، منزل٥، مدیریـت عمومـی ارزیابی قـرار دادهای مرکز.

شماره تماس: ٠٢٠٢٩٢٤٦٠٧ -٠٢٠٢٩٢٤٦٢٤

مجلس داوطلبی تاریخ ۴/ حمل/ ١۴٠۴ به ساعت ١٠:٠٠ قبل از ظهر برگزار میگردد

***

**اعلان داوطلبی (۳) باب دوکاکین واقع ناحیه اول و (۲) باب دوکاکین مربوط ناحیه (۱۱) شهر کابل!**

ریاست عمومی املاک دولتی وزارت مالیه سـه باب دوکاکین واقع مندوی کابل ظاهر شاهی مارکیت مربوط ناحیه اول، و دو باب دوکاکین واقع لیسـه مریم ناحیه (۱۱) شهر کابل مربوط مغازه نمبر(۱۰) را به شکل آفر سربسـته طور جداگانه به مدت(۱) سال به اعلان داوطلبلی می سپارد.

۱- یک بـاب دکان نمبر(۱۱) به مسـاحت (٠٢/ ٧) مترمربـع واقـع منـدوی کابل مربوط ظاهرشاهی مارکیت به کرایه ابتدائی ماهانه مبلغ( ٣/ ٤٣٨٣٣ ) افغانی.

۲- یک باب دکان نمبر (١٧٤) به مساحت (٨/ ٢) مترمربع واقع منـدوی کابل ظاهر شـاهی مارکیت بـه کرایه ابتدائـی ماهانه مبلغ( ٦/ ٣٧١٦٦ ) افغانی.

۳- یک باب دکان نمبر(١٧٥) به مسـاحت (٨/ ٢) مترمربع واقع منـدوی کابل ظاهر شـاهی مارکیت بـه کرایه ابتدائـی ماهانه مبلغ( ٣/ ٣٧٢٠٣ ) افغانی.

کوردینات(جی.پـی.اس نمبـر) ٣٤/٥١٧١ -٦٩/١٧٧٥٦

۴- یک بـاب دکان نمبر(۹) به مسـاحت (٢٥/ ٧) مترمربع واقع لیسـه مریم مربوط مغازه نمبر۱۰ به کرایـه ابتدائی ماهانه مبلغ ( ٣/ ٤٧٤٣٣) افغانی.

۵- یک بـاب دکان نمبر(۸) به مسـاحت (٤/ ٨) مترمربـع واقع لیسـه مریم مربوط مغـازه نمبر(۱۰) بـه کرایه ابتدائـی ماهانه مبلغ( ٥٩٦٠٠ ) افغانی.

کوردینات(جی.پـی.اس نمبـر) ٣٤/٥٧٨٩٢ - ٦٩/١٣٨٩٨

اشـخاص حقیقـی و حکمی کـه خواهان بـه کرایه گرفتن جایداد های فوق را داشـته باشـند میتوانند درخواست های شان را بعد از تاریـخ ۱۸ / حوت/ ۱۴۰۳ الی ۲/ حمل / ۱۴۰۴ به ریاسـت عمومی املاک دولتی امارتـی واقع منزل چهـارم تعمیر ۱۴ منزله سـینمای پامیر تسلیم نموده شـرطنامه را اخذ نمایند.

آدرس:سینما پامیر تعمیر١٤منزله، منزل٥، مدیریـت عمومـی ارزیابی قـرار دادهای مرکز.

شماره تماس: ٠٢٠٢٩٢٤٦٠٧-٠٢٠٢٩٢٤٦٢٤

مجلس داوطلبی تاریخ ۴/ حمل/ ۱۴۰۴ به ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر برگزار میگردد.

***

**اعلان داوطلبی**

موضوع: اعلان تدارکاتـی پروژه خریداری دو کیلووات سیستم سولر واقع جای رییس سرک دارلامان ولایت کابل.

موسسـه فرشـتگان نجات (OARDS) از تمـام داوطلبان شـرکت های لوجسـتکی واجد شـرایط دعوت مینماید تا در پروسـه داوطلبی پروژه خریداری وسـایل سیسـتم سـولر در ولایـت کابـل سـرک دارلامان بریدگی جای رییس مقابل نیازی سنتر منزل سه موسسـه فرشتگان نجات تشریف بیاورد و سافت شـرط نامه مربوطه را در حافظه یا فلش دسـک از مدیریت تدارکات به دست آورده آفرهـای خویـش را مطابق شـرایط مندرج شـرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سربسـته از تاریخ نشر اعلان الی سـاعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز شنبه تاریـخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۵ به مدیریت تدارکات موسسه OARDS تسلیم نمایید. آفر های ناوقت ریده قابل پذیرش نمی باشد.

جلسـه آفر گشـایی به روز یک شنبه مورخ ۱۴۰۳/۱۲/۲۶ سـاعت ۱۱ قبل از ظهر در موسسه OARDS تدویر میگردد.

بـرای معلومات بیشـتر به شـماره یا ایمیل آدرس ذیل به تماس شوید.

شماره تماس: ۰۷۸۶۹۹۹۹۶۰ ۹۳+

ایمیـل: Mohammadshah۲۱۰@gmail.com

آدرس: سرک دارلامان بریدگی جای رییس مقابـل نیازی سـنتر منزل سـوم موسسـه فرشتگان نجات (OARDS).

**اعلان داوطلبی مؤسسه داکار**

DACAAR

مؤسسه خیریه داکار (اعلان داوطلبی برای تهیه گیت وال های جستی و اتصالات آن، پمپ های زیر آبی، سولر انورتر و سولرها برای پروگرام داکار) را در پروسه های ذیل به داو طلبی میگذارد. لهذا از تمام علاقمندان واجد شرایط تقاضا بعمل میاید تا آفر های سربسته شانرا قبل از معیاد تعین شده به دفتر مرکزی داکار بسپارند.

1-DACAAR ITB 09 PRF-146 to 150/00000/02.2025
(داوطلبی برای تهیه گیت وال های جستی و اتصالات آن)

2-DACAAR ITB 10 PRF-151 to 152/00000/02.2025 (داوطلبی برای تهیه پمپ های زیر آبی)

3- DACAAR ITB 11 PRF-152 to 153/00000/02.2025(داوطلبی برای تهیه سولر انورتر)

4- DACAAR ITB 12 PRF-153 and 156/00000/02.2025 (داوطلبی برای تهیه سولر ها )

بناً ازمتقاضیان محترم خواهشمندیم تا آفرهای اعلان داوطلبی برای باید الی تاریخ ۲۳ مارچ ۲۰۲۵ مطابق ۰۴ حمل ۱۴۰۳ تا ساعت ۴:۰۰ عصر به شعبه لوجستیک دفتر مرکزی مؤسسه داکار واقع پروژه تایمنی، پایکوب نصوار، سرک 12 قلعه فتح الله، ولایت کابل بسپارند.

فورم قیمت گذاری و اعلان داوطلبی را از صفحات انترنیتی ذیل میتوانید بدست آورید:

www.Dacaar.org
www.Acbar.org

نمبر تیلفون: ۰۰۹۳۲۰۲۲۰۱۷۵۰

## پکتیکا کې د شاوخوا ۶ میلیونو افغانیو...

ښـار لپاره پـه منظـور شـوي اصلاحـي، پراختیایـي او تفصیلي پـلان کـې بیـا د ۲۱۶ مارکیټونو، ۸ فرعـي سـړکونه، جوماتونـو، تشـنابونه، معیاري کانالیزاسـیون سیسـتم جـوړول او د نـورو اړینـو اسـانتیاوو رامنځتـه کـول شاملېږي.

## خوست کې سرې میاشتې ۳۷۰ بېوزلو...

د صبریو ولسوالۍ اړوند د ۳۷۰ بې وزله او اړمنو کورنیو سره د خوراکي او غیري خوراکي توکو مرسته ترسره شوه.

یـادي کورنۍ څو ورځـې وړاندې د خوسـت ولایت سـرې میاشـتې نمایندګـۍ د BDRT ټیم له لوري د کوبو سیسـتم په واسـطه ثبت او راجسـتر شـوې وې، چې پنجشنبه ورځ ورته د سـویل ختیځ ساحوي زون محتـرم رئیـس مولوي سـید منهاج الدین هاشـمي او د خوست ولایـت سـرې میاشـتې نمایندګی رئیس شـیخ الحدیـث محمد ولي جـان عدالت یـار په شـتون کې، د ترکیـې هېـواد پـه مالي مرسـته د افغانـي سـرې میاشـتې ټولنـې لـه لـوري د ٦ قلمـه خوراکي او غیرخوراکـي توکو مرسـته ترسـره شوه.

## لوګر کې سیاحتي شرکتونو...

سره ۵۰ تنو ته کارموندنه شـوې او د لوګـر اوسـېدونکو ته ګټې اسانتیاوې هم رامنځته شوې دي. یاده دې شي چـې دمګړۍ لوګر کې ټولټال ۲۹ سـیاحتي مرکزونه فعال دي.

## یو ځل بیا ۷۶ ځوان منسوبین له مسلکي...

په دې مراسمو کې د یادې اکاډمۍ د قومانـدان عبدالناصـر په ګډون ګڼو منسـوبینو ګډون کړی و. د یادونـې وړ ده، چـې د غونډې په ترڅ کـې نویو فارغانـو ته برې لیکونو هم ورکړل شوي دي.

## لغمان کې ټرافیکي پېښې مړګ...

دغه پېښه تېره شپه شاوخوا ۱۱ بجې د کابـل ـ جلال اباد پـر لویه لاره دټوډې او کـرولا ډوله موټرو ترمنځ منـځ ته راغلې. د لغمـان د ترافیکو مدیریـت ویلي، چې په دغه پېښـه کې دوو کسـانو خپل ژوند له لاسه ورکړی او د یـوې مېرمنې په ګډون ۷ نور ټپیان شوي دي.

## ایران او پاکستان دې د نړیوالو کډوالو...

کډوالـو لپاره به یـوه د حل لار پیدا کړي.

بل‌لـور د پاکسـتان سـفیر هـم ویلـي، چـې د اسـلامي امارت غوښـتنې بـه لـه پاکسـتاني چارواکـو سـره شـریکې او سـتونزې بـه د تفاهـم له لارې حل شي.

یاده دې وي، پـه دې غونډه کې د کډوالو او راسـتنېدونکو چارو وزارت سرپرسـت د تورخـم دروازې تـه پـه اشـارې ویلي، چـې د دغـې دروازې تـړل د سـتونزو د حل لار نه ده.

## تورخم کې د ټپیانو پوښتنه او...

پولـه‌سـاتو ترمنځ نښـته کې اته تنه ټپیان شوي وو.

ویل کیـږي چې پـه ټپیانـو کې د حریت، شمشـاد او پـژواک اژانس خبریالان هم شامل دي.

یـاده دې شـي چې ددې پېښـې د ټپیانـو روغتیایـي وضعیـت ډاډمن دی.

## فراه کې شنې خونې...

د یادو مسـئولینو په وینا ددې شـنو خونو حاصلات ګاونډیو ولایتونو او آن عراق ته صادریږي.

## نجات یک زن از زندان خانگی...

شـملزوی ولایـت زابـل به مدت شش سـال در محرومیت از حقوق اساسی و شرعی‌اش قرار داشت.

در خبرنامـه آمـده کـه بـه کمک محکمه محتسـبین موفق شـده‌اند تـا در میان این زن و شـوهر، خلع فیصله کنند.

بربنیـاد احـکام شـرعی، خلع به نوعـی از طـلاق گفته می‌شـود که زن با گذشتن از حقوق مالی‌اش از شوهر خود جدا می‌شود.

وزارت امـر بالمعـروف و نهـی عن‌المنکر تاکید کرده که محتسـبین این وزارت به حفظ کرامت انسـانی و حقوق زنان در کشور متعهد اند.

ایـن در حالـی اسـت کـه در ماه گذشـته (دلو) نیز ۳۰ زن به کمک محتسـبین توانسـتند از حقـوق شرعی‌شـان مسـتفید و از زنـدان خانگی نجات یابند.

## کنډواله شوې غزې کې...

د لومړۍ فاز جوړول، د سوداګریزو بندرونـو جـوړول، د هوايـي ډګر جـوړول او نـور عامـه چوپړونـه رامنځته کول دي.

د لومړیـو اټکلونو لـه مخې د غزې بیارغونـه شـاوخوا ۵۳ میلیـارده امریکایـي ډالـرو تـه اړتیـا لري.

فکـر کوو، چـې که عربـي او ټول اسـلامي هېوادونه په یوه غږ د غزې په بیارغونه کـې برخه واخلي، نو د اسلامي نړۍ د یووالي عالي ننداره به يې ښودلي وي.

**Shariat Daily**

# Shariat
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

# شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Saturday 08 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 701

# امضای ۱۵ تفاهمنامه میان وزارت صنعت و تجارت با مؤسسات ملی و بین‌المللی




حداقل ۱۵ تفاهمنامه به ارزش ۱۲ میلیون و ۴۷۵ هزار و ۴۰۶ دالر امریکایی میان وزارت صنعت و تجارت و موسسات ملی و بین‌المللی به امضا رسید.

وزارت صنعت از امضای این تفاهمنامه‌ها میان نورالدین عزیزی، سرپرست این وزارت و نمایندگان موسسات خبر داده است.

بربنیاد خبرنامه، هدف از امضای این تفاهمنامه‌ها حمایت و تقویت سکتور تشبثات در کشور عنوان شده است.

قرار است موسسات امضا کننده تفاهمنامه‌ها در راستای توسعه مهارت‌های کارآفرینی اساسی، رشد، توسعه و انکشاف صنعت قالین، صنعت جواهرات و صنایع‌دستی، ارزیابی بازار و شناسایی چالش‌های سد راه تشبثات کوچک و متوسط کار کنند. ص۳

## یو ځل بیا ۷۶ ځوان منسوبین له مسلکي او پوځي زده کړو فارغ شول



د ملي دفاع وزارت وايي، چې د حضرت ابوعبیده بن جراح «رض» ملي دفاع پوهنتون اړوند د حضرت ابودجانه بن خرشه د قوماندانیت او قرارګاهي اکاډمۍ له شپږ اونیزه مسلکي او پوځي زده‌کړو ۷۶ ځوان منسوبین فارغ شوي دي.

د یاد وزارت د خبرپاڼې له مخې، د دې فراغت په مراسمو کې مسئولینو فارغو شویو کسانو ته سپارښتنې کړې، چې د خپل اسلامي نظام د ساتلو لپاره په هره برخه کې علم حاصل کړئ او د خپلو امرانو اطاعت وکړئ. ۳مخ

## اوچا افغانستان ته شاوخوا ۴۸ میلیونه ډالره ځانګړي کړي




د ملګرو ملتونو د بشري مرستو د همغږۍ ادارې «اوچا» ویلي چې افغانستان سره د مرستې لپاره ۴۸ میلیونه او ۵۰۰ زره ډالره ځانګړي شوي دي.

دغه بنسټ پر ایکس‌پاڼه یوه خبرپاڼه کې ویلي چې دغه پیسې به اړمنو افغانانو ته د بېړنیو بشري مرستو وړاندې کولو په برخه کې ولګول شي.

اوچا لیکلي چې د افغانستان لپاره د ځانګړو شویو څه باندې ۴۸ میلیونه ډالرو له جملې ۱۹ میلیون یې د ملګرو ملتونو د چټک غبرګون صندوق له لوري او ۲۹ میلیونه او ۵۰۰ زره یې د بشردوستانه صندوق له لوري تامینېږي.

## خوست کې سرې میاشتې ۳۷۰ بېوزلو سره مرستې کړې



د افغاني سرې میاشتې ټولنې سویل ختیځ سیمه ییز زون اړوند د خوست سرې میاشتې ریاست له لوري په صبریو ولسوالۍ کې د ۳۷۰ بېوزله او اړمنو کورنیو سره د خوراکي او غیرخوراکي توکو مرسته ترسره شوه.

د سویل ختیځ ساحوي زون اړوند د خوست ولایت سرې میاشتې ریاست له لوري... ۳مخ

**عزم قول اردو:**

## ۱۰۲ تنه د توپچي له عملي او نظري زده کړو فارغ شول



د ۲۱۵ عزم قول اردو د ۱۰۲ تنه د «ZU۲۳» توپچي وسلې له عملي او نظري زده‌کړو له فراغت خبر ورکړی دی.یاده قول اردو وایي، چې دغه ۱۰۲ تنه د دې قول اردو د سرحدي محمدي لواء د توپچي امریت له لوري د «ZU۲۳» توپچي وسلې له لس ورځني عملي او نظري زده‌کړو وروسته فارغ شوي دي. ۳مخ

## لغمان کې ټرافیکي پېښې مرګ ژوبله اړولې



د لغمان امنیتي مسئولین وايي، چې د کابل ـ جلال‌اباد پر لویه لار د یوې ترافیکي پېښې له امله دوو کسانو خپل ژوند له لاسه ورکړی او ۷ تنه نور ټپیان شوي دي. ۳مخ

## لوګر کې سیاحتي شرکتونو او د انلاین خدمتونو مرکزونو ته جوازونه وېشل شوي




د لوګر د اطلاعاتو او کلتور ریاست د کلتور او ګرځندوی آمریت مسئولینو ویلي چې د روان کال له پیله ۱۶ سیاحتي او د خدمتونو د ثبت مرکزونو ته د فعالیت قانوني جوازونه ورکړل شوي دي.

ددې مرکزونو له فعالیت... ۳مخ



## امریکا با جنبش حماس مذاکره محرمانه انجام داده است

رسانه‌های بین‌المللی گزارش داده‌اند که دولت امریکا با جنبش حماس اخیراً مذاکرات محرمانه انجام داده است.

بربنیاد گزارش، دو منبع مطلع از این گفت‌وگوها گفته‌اند که آدام بولر، فرستاده ویژه امریکا با نمایندگان جنبش حماس در دوحه قطر دیدار کرده است.

در این گزارش در مورد این که از جانب جنبش حماس چه کسی مسوولیت مذاکرات را برعهده داشته، چیزی گفته نشده است.

قصر سفید در پاسخ به سوال رویترز در مورد این مذاکرات گفته که آدام بولر، صلاحیت گفت‌وگو و مذاکره با حماس را دارد.

هنوز معلوم نیست که در این مذاکرات روی کدام موارد گفت‌وگو شده و چی نتایجی بدست آمده است.



## د امریکا یوه بلک هاک چورلکه لوېدلې

امریکایي رسنیو د یوې ویډیو په خپرولو سره ویلي، چې د امریکایي ځواکونو یوه بلک هاک چورلکه د مرکزي امریکا په هاندوراس کې د ګډ ماموریت پر مهال لوېدلې ده.

د رسنیو د راپورونو له مخې ددې الوتکې د سقوط په پېښه کې څلور امریکایي پوځیان ژوبل شوي دي.

امریکایي رسنیو ویلي، چې ددې پېښې ټپیان روغتون ته وړل شوي او روغتیا یې د ډاډ وړ ده.



**امانوئل‌مکرون:**

## اروپا به مبارزه بدون امریکا باید آماده شود

امانوئل مکرون، رئیس جمهور فرانسه می‌گوید، هرچند به مبارزه مشترک با امریکا امیدوار است اما اروپا باید برای سناریوی بدون امریکا نیز آماده شود.

رئیس جمهور فرانسه این اظهارات را در واکنش به توقف ارایه معلومات استخباارات از سوی امریکا به اوکراین در جنگ با روسیه گفته است.

مکرون همچنان افزوده، قوماندانان نظامی کشورهای عضو اتحادیه اروپا را برای دریافت طرح بدیل به فرانسه دعوت کرده است.

به گفته او، قرار است این نشست این قوماندان‌ها هفته آینده به میزبانی فرانسه برگزار شود.

## واشنګټن له اوکراین سره استخباراتي همکارۍ هم بندې کړې

متحده ایالتونو له اوکراین سره تر پوځي همکاریو وروسته د استخباراتي معلوماتو شریکول هم بند کړل.

د متحده ایالتونو د مرکزي استخباراتو (سي‌آی‌اې) مشر جان رتکلیف تېره ورځ ویلي، چې واشنګټن د اوس لپاره له کیف سره د استخباراتي معلوماتو شریکول درولي دي.

ویل‌کېږي، چې دا کار به له روسیې سره په روانې جګړې کې د اوکراین وړتیا محدوده کړي.

یاده دې وي، امریکا په دوارو هېوادونو فشار راوړی چې د جګړې پای ته رسولو لپاره د سولې ترون وکړي.